# د مینې تال

د محمد داود شهید شعرونه




# د مینې تال

د محمد داود شهید

د شعرونو لومړنۍ مجموعه

د چاپ کال ۱۳۷۳

د کتاب نوم.......... (د مینی تال)

شاعر ............. محمد داود شهید

د کتاب شمیر ...... دوه زره ټوکه

د چاپ ځای ........ د سید جمال الدین
افغانی مطبعه

د چاپ نیټه ........ ۱۳۷۳/۱/۲۵

انځورگر............ (نوری)

کمپوزیتر .......... حنان عزیز

دا کتاب دهیواد د

خپلواکۍ شهیدانو ته

اهداء شو.

ج



دامانـو نـه دوطن پـه ما ښایسته دي

لـویـه نښه د سپرلی گل د غا ټول یم

# د لوی خدای په نامه

څه د پاسه دیرش کاله کیږی چی د ښاغلی محمد داود شهید سره زما پیژندگلی شوی ده. دی د دوست محمد خان محمد زی زوی، د بی بی سایره محوی قادری د سترگو تور او د سردار محمد رسول خان شهید لمسی دی. دی د کنړونو په اسعد آباد کی زیږدلی او د ننگرهار په بهسودو کی لوی شوی دی. د ځلمی توب له زمانی څخه ئی د شعر او شاعری سره مینه درلوده. له دغه وخت څخه به یی یو نیم شعر وایه. د ملنگ جان په مکتب کی شامل نه ؤ خو د هغه تر څنگ یی د مینی او سوز شعرونه ویل. دی د پښتو ټولنی په ډیرو مشاعرو کی شریك شوی دی. ډیر شعرونه ئی په کابل راډیو او کابل مجله کی نشر شوي دي. د شاعری تر څنگ ئی د معلمی او ماموریت وظیفی هم سرته رسولي دي. خو همیشه یی د شعر ویلو لړی جاری ساتلی ده.

چی په آخر کی د ده د شعرونو نه یو دیوان (د مینی ټال )جوړ شو. هر شاعر چی د دیوان خاوند وي هغه د شاعرانو په ډله کی راځي. دا چی په کومه درجه کی راتلای شي هغه د شاعر په ټوله وینا پوری اړه لري. د ښاغلی شهید کوم شعرونه چی مونږ لوستی دي هغه خوازه او په زړه پوری دي. ښه شعر ښه دی او بد بد. بد شعر هغه دی چی د پیسو د پاره وي لکه چی خوشحال بابا وایی:

۵۹

د هغه شا عر دا نی وشه په ژبی
چه د شعر در دانی پلوري په مال

ښه شعر مرغلره ده او باید چی قدریی وشی. مونږ د ښاغلی شهید شعرونو ته د قدر په سترگو گورو او د پوره لوستلو هیله یی کوو.

پوهاند صدیق اللّٰه "رشتین"

ab

# د مینی تال او د هغه شاعر

گـرځَی مي ا شنا د نا ا شنا مخکی
وشلوم گریوان می زه د چا مخکی
(شهید)

ویښ او هوښیار ملتونه هڅه کوي چی خپلی مورنی ژبی ته پراختیا او پرمختیا ورکړی او خپل ملی کلتور او فرهنګ د ژبی په مرسته خوندی وساتي. پوهان په دی عقیده او مفکوره دي چی د نړی د ملتونو پیژندګلوی، موجودیت او هویت د هغوي د ژبی د څرنګوالی پوری اړه لری.

ښکیلاك ګر هیوادونه په راز، راز لارو چارو خپل کلتور او ژبه خپلو مستعمرو ته لیږدوي. پښتو درنه او خوږه ژبه سره له دی چی په معنوي، ګرامری او لغوی لحاظه یوه شتمنه ژبه ده او څو زره کلن تاریخ لری خو بیا هم د وخت د یو شمیر مشرانو او پښتنو د بی پروائی له امله د زیاتو ستونځو سره مخامخ شوی پر دی خو څه کوی خپلو ئی هم پالنه او پوښتنه نه ده کړی او دښمنانو او متعاصبو کسانو چی ورسره هر ډنګه سلوك کړی چائی مخه نه ده نیولی نو ځکه ئی د کورونو او دفترونو دروازی پر مخ تړلی دي. ځینو پښتنو د

ac

پیسو او چوکی له پاره د یولړ سازشونو په نتیجه کی پښتو یی پریښی، پښتو یی هیره کړی. په دغه ډول بی احساسه پښتنو خدای بخښلی مستغنی صاحب په هغه چاچی خپله ژبه د نورو د خوشالولو له پاره هیروی داسی غږ کوی:

"ښه دی ښه دی چی په سل ژبو دانائی
ولـــی مه کیږه نـــــــادان د خپلی ژبی"

د خوښی ځای دی چه د څو کلنو راهیسی یو شمیر پوه او احساس لرونکی پښتانه د خپلی خوږی او درنی ژبی پښتو ارزښت او درنښت ته ځیر شوی د پښتو سره پښتو کوی د پښتو سره مینه لری پښتو وائی پښتو لیکی په علمی او عملی توگه ورته خدمت کوی د پښتو ژبی د دښمنانو او متعاصبو کسانو د تعاصب مخه نیسی.
د کتابونو او اثارو چاپول د ژبی د پراختیا او پرمختیا اساسی لاری چاری دي له نیکه مرغه پښتانه پوهان او د نظر خاوندان هڅه کوی چی د پښتو ژبی راز، راز، اجتماعی، علمی، ادبی او داسی نور اثار چاپ او خپاره کاندی د ژبی او قلم په وسیله پښتو ته خدمت وکاندی.
محمد داود (شهید) هم په خپل وار پښتو ژبی ته د یاد ولو او ستایلو وړ خدمتونه کړی کله یی د یو ښوونکی او کله یی د یو شاعر او

لیکوال په توګه د پښتو سره خپله پښتو او مینه ښودلی. دا چی محمد داود (شهید) په یوی پښتنی، علمی او ادبی چاپریال کی زیږیدلی او روزل شوی نو ځکه تری د همدغسی هڅو او خدمتونو هیله کیدای شی. محمد داود (شهید) د یوی داسی پوهی، پرهیزګاری او شاعری مور په غیږ کی سترګی غړولی او را لوی شوی دی چی په خبرو او شعرونو به یی ادبی غونډی او مشاعری ښکلی او رنګینی وی او ادبی جائزی به یی ګټلی. تاریخ کیسی کوی د محمد داود (شهید) نیکه محترم ( سردار محمد رسول خان) ددین او وطن له پاره د انګریزانو سره په مخامخ جګړو کی په خیبر کی د شهادت لوړ مقام ته ورسید. همدغه سبب دی چی محمد داود (شهید) د وطن، ملت او پښتو سره مینه لری او له بی ننګه او هغو پښتنو څخه چی پښتو په چوکیو او پیسو پریږدی او د چا خبره په پښتو او پښتنو تجارت کوی کرکه لري هغوی غندی او بد ورته وائی.

د مینی ټال د محمد داود شهید د شعرونو لومړی شعری مجموعه ده چی پښتو ژبه ته یی د خدمت په لړ کی لیکلی په دغی مجموعه کی د ډول، ډول موضوعاتو محتوا او مطالبو لرونکی شعرونه ځای شوی او د هر چا ذوق پکی ساتل شوی.

د شهید په شعرونو کی د هیواد ، خپلواکي، پښتو، انسان، انسانیت، پوهی، توری،مشرانو، میړانی، چاپریال، ښکلا، طبیعت او داسی

نورو سره مینه له ورایه ښرگندیږي.
دده شعرونه ساده او روان دي د ځینو شعر پیژندونکو په نظر د شعر زیاته پیچلتیا شعر ته زیان رسوي.
ښاغلی شهید همیشه د مینې شاعرانه خیالونو او چورتونو آرام ته نه دی پریښې کله د اشنا وفا او کله جفا یادوي:

لاس تر زنی تولہ شپه تر سبا ناست یم
ما یو ا زی ستا خیا لـــــو نه ځنگو ی

د محمد داود شهید د ځینو غزلونو ځینې برخې دومره خوږې او رنگینې دي چې د لوستونکي په زړه او احساس ژوره اغیزه کوي وگورئ:
کله چې راشي په دی خړو دښتو
مجنــو ن کو ی بیا د لیلا خبر ی

د خپل اشنا سره د خپلې مینې او وفا ښرگند ونه په ښه شاعرانه انداز کوي:

که روح او تن را نه جدا کاندی ښوك
د ا ســـتا له مینې به بیزا ر نه شـم

همدغه راز محمد داود شهید په پښتنو کشرانو د خپلو مشاهیرو او مشرانو درناوی یو اخلاقی پور بولی او وائی:

تاریخ یی چی په قدر او عـزت سره تل ستا ئی
میرویس او احمد شاه او خوشال خان مه هیروی

شهید مینه په مینه پالی او هیڅکله په غمونو او دردونو کی مینه او اشنا له یاده نه اوباسی وائی:

په ما ا نبا ر دی د د نیا غمو نه
څه می د ځان څه د اشنا غمونه

د شعرونو په لړ کی یی د سبا سترگه د غزلی پیل او پای څومره زیاته لفظی او معنوی ښکلا لری:

د ا خو نو ما خپله لیلا و لیده
نن می چی سترگه د سبا ولیده
د شهید زړه ئی له گوگله یو و ړ
لا می مغروره بی پروا و لیده

ز

شهید د بی عمله عالم علم نه خوښوی ریا کار او فریبکا ر عالمان یی ښه نه راځی نو ځکه د خپل یو خوږ شعر په یوه برخه کی په جرئت سره وائی:

چی عا لم و ی او عـمل هم و ر سره و ی
چی په دی نوم معتبر وی زمـــا خوښ د ی

باید و وایم د شهید د مینی ټال په شعری مجموعی باندی چی هر څومره خبری وشی بیا هم لږی دي . زه د نورو خبرو څخه تیریږم د مینی د ټال د شعری مجموعی چاپول او خپرول او ددغه ادبی گل غوړیدل د پښتو د ادب په بڼ کی یوه بله ښکلا او زیاتونه بولم. په داسی حال کی چی محمد داود شهید ادبی هڅی ستایم او د لا نورو ادبی بریاوو هیله ورته کوم خپلی خبری د هغه د مینی سودا د خوږی غزلی په دی بیت پای ته رسوم:

په زړه می ستا خبری تیری شولی
خپـلی خبـری را نه هـیری شو لـی

همدومره

حبیب الله زړه سواند شینواری

د ۱۳۷۲ کال د حوت و میاشتی ۱۲ نیټه

جلال آباد

# مناجات

خدایه تا ته می سپارلی دي خپل ځان
حقیقی ساتونکی ته یی د انسان
د آرزو او د امید ځای خو می ته یی
ستا کرم او فضل مونږ ته دي عیان
ته رحیم یی په ما ورحمیږه خدایه
ستادربار کی می لاس پورته دي هرآن
په هر کار کی ته قادر او توانایی
ستا له ذاته شمه زر ځلی قربان
ته غنی یی زه فقیر او ډیر نا داریم
تا نه مال او عزت غواړم هم ایمان
ننگ ناموس چی را ته تا دي رابخښلی
له بی ننگونه می ساته هر زمان
سر اومال دی زما ځار ستاله نامه شی
له گناه څخنی می ساته په امان
چی مصدر د خدمتونو شم د خلکو
خدایه ته می کړی ترسره داارمان

د ظالم او کبرجن لاسونه لنډ کـــړی

غـــریبانو بانـــدی تـه شی مهـــربان

لوړ احساس د بشریت راکی پیداکـــړی

چی خپه رانه څـــوك نه شی په جهان

هردښمن زمونږدخاوری ورك اونیست کړی

د وطن نه راتـه جوړ کـــــړی گلستان

بی له تانه می بل چاته سرتیټ نه کـــړی

تل په هسکه غاړه مالـــــــری افـغان

د شهید سوال او زاری ومنی خدایه

په خاطر د خپل حبیب او د قـــران

# نعت

غمـــخور د امتیا نو  پیغمبر زمو نږه دی
سر لوړی په کونینو کی رهبر زمونږه دی
شمال نه تر جنوبه او مشرق نه تر مغربه
په نوم د مسلمان دا لوی لښـــــکر زمونږ ه دی
سپوږمی او لمر ئی دي په لوی حیرت نورانیت ته
د ا شان او چت په شمس او په قمر زمونږه دی
رڼا خـــوره  وره ده  هـــر ی خـو ا ته  د ا سلام
په بـــرخه د ازل نه د ا ا خـــتر زمـــو نږه دی
پاسته شول واړه زړونه او خوږی شوی تولی ژبی
تا ثیر د کلـــیمی لـــکه د لمر زمو نـــږه دی
پـــو هیږم بی له شـکه چی جنت کـــــی د ا خلیږو
حامی د دین ا یمان چی رب اکبر رمو نږه  دی
د دیــن ا و د ا سلام د د ښمـــنا نو مقا بـــل ته
په لاس کـــی د غز ا تیره خنجر زمونږه دی
خائن او منا فق سړی په مـــونږ کـــی نه ځایږ ی
په جار دغه ا علان او د ا خبر زمـــونږه دی
سرتیت دي وی هغه چی په خوله یو او په زړه بل وی
دا غږ هرخواته خپور په لر او بر زمونږه دی
دا فخرد اسلام او لـــــــوي دښمن د مشرکــــــــانو
پیشوا د دین نبی خـــیر ا لبشر زمـــونږه دی

په یاد او بو د ئی هر چیرته جوړیږی محفـــــــلو نه

سا لار د لوی کاروان دا معتبر زمونږه دی

شهیده مــــه هیریږه آخرت له سختی ور ځی

شفیع دوســـت د الله چی په محشر زمونږه دی

# برگه زمانه

نه شته پخــو انی مینی او نه هغه یاران دلته
ټول په چل چلیبزی که پردي دي که خپلوان دلته

ټول په چل چلیبزی او په چل کی یی چلونه دی
نه شته پخوانی زړونه اوس بی الفته زړونه دي
برگه زمانه شوه د هر چا بیل مزا جــو نه دي

غم کی وي سازونه او ښادی کی وی خپگان دلته
ټول په چل چلیبزی که پردي دي که خپلوان دلــته

ټگـــــــه یار ا نه کــی معشوقه د هیرو لو شوه
ژبه یوه نه شوه نو اوس وړ د غـــو ځولو شوه
مینه ریا کاره ده نو خود د پریښو و لــو شوه

بل شانته روزگار شو د جفا را غی دوران دلـته
ټول په چل چلیبزی که پردي دي که خپلو ان دلته
نه شته ورورگلوی او همدردي اوس په دوستانوکی
راشه درشه ورکه شوه ددی وخت په خپلوانو کی
مینه لبا سی شوه جنکو او هلکانو کـــــــــــی

گرځي غوړي بريتي غوړ سرونه عا شقان دلـــته
ټول په چل چليبزی که پردي دي که خپلوان دلته

کشراوچت ناست وی د مشرانو مخ کی دب کوي
مشر هم مجبور دی د کشرا نـــو که ادب کـــوی
سخته کَډوډی شوه کار خلاف د خپل مذهب کوی

څه عجب نظام شو عجيبه دی ا نسانان دلـــته
ټول په چل چليبزی که پردي دي که خپلوان دلته

نه شته اتفا ق او اتحاد قـومی ځو انا نو کـــــی
کـبر يو په دوه شو د خا نا نو نه خو ارانو کی
نه شته يو مصلح سړی زمـو نږ ملکا نو کـــی

وينم ډير بی قدره هر مـجلس کی عالمان دلـته
ټول په چل چليبزی که پردي دي که خپلوان دلته
خلـــکو ته چی گورم مختلف ئی مزا جونه دی
پوی سړی عزت نه شته بی تـوله حسابـو نه دی
خوردپاواو چارك دی چا پټ کړي ټول منونه دي
واړه شو بی فـکره د فـکرونو خاوندان دلـــته
ټول په چل چليبزی که پردي دي که خپلوان دلته

زه شهید حیران یم چی اوس چاته دا وینا وکړم
چاته ګریوان څیری کـــړم د چا سره صلا وکـــړم

څه وکړمه چیرته لاړ شم چا مخ کی ژړا وکـــړم

ناست یم دوراهی کی بی لوڅه او حیران دلـــته
ټول په چل چلیزی که پردي دي که خپلوان دلته

# د وطن غږ

زه ژوندي تاريخ لرم خبر پرې جهانيان دي
ما په خپله غيږه کي روزلي افغــــانان دي

زه د خداي په مرسته ځان کې ښه تاقت اوتوان لرم
نه پريدم پردي ځانته غيرت نه ډك پيمان لرم
زه د دنگو دنگو غرو لمنو کـــــې زمريان لــــــرم
شور کی د سيندو مي دعظمت ننبى عيان دي
ما پخپله غيږه کــــي روزلي افــــغا نان دي

زه د آزادی د شهيدانو لــــــو ی يادگـــــار يمه
زه ځاي دخاړ پوښو شين چمن او لاله زار يمه
زه ملي نامــــوس د با نا مو ســــــو د ديار يمه

ما په لـوړ همت سره پا للي فرزندان دي
ما په خپله غيږه کي روزلي افغانا ن دي

زه د پت چراغ د ا فغا نا نو د ننگ کـــــور يمه
زه د شا ز لميو لو ي ميراث د ستر گو تور يمه
زه د ميرويس خان او اکبر خان سکنی مـــور يمه

لور مې ملالۍ وه چه ټول وروڼه يې غازيان دي
ما په خپله غيږه کې روزلي افغانان دي

ما د چنګيز يا نو هر يرغل په غم لړلي دی
ما د سکندر لښکر مات کړی او شړلي دی

ځان مې د د ښمن په وينو ښيا ښيا لمبولی دی

نه پريږدم پردي تل مې زړتلي د ښمنان دي
ما په پخپله غيږه کې روزلي افغانان دي

ډک يمه له فيضه ما کې هر څه شته ثروت لرم
زه سپېڅلې خاوره يم په خلکو کې عزت لرم
زه تجاوز ګروته سوُاودلرم آفت لرم

څوک چې راته بدګوری اخته غم کې دځان دي
ما په خپله غيږه کې روزلي افغانان دي

# د مینی تاِل

ما د یار خو ا ږه یا دونه ځنګوي
نن مې بیا څه تیر وختونه ځنګوي

مستقبل ته ا نتظا ر یم څه به کیږ ی
اوس خو ما دیا ر غمو نه ځنګوي
تو رو شپو کی دی ا و ږدو لا رو ته ګو رم
ا نتظا ر مې امید ونه ځنګوي

لاس تر زنی تهوله شپه تر سبا نا ست یم
ما یو ازی ستا خیالونه ځنګوي
عا قبت به ارما نجن له دنیا لاړ شم
دا تر څو به مې چو رتو نه ځنګوي
ډیري شپي مي ستا په یاد ویښې کړ ي تیر ي
شپه اوورځ مي شوګیر ونه ځنګوي

خوشحا لي د رقیبا نو په نصیب شوه
ما شهید د غم خو بو نه ځنګوي

# د عشق مقام

د عشق مقا م تـه ختل گران ښکاري
مجنـون تـه گو ره سر گردان ښکاري
په خـولـه چـی تـل ډ يری خـبری کـوي
ځـای د عــمل کـی بـیا حـیران ښـکاري
و يـل کوه خو کـو ل هــــم و ر ســـره
پـه تــش و ینا سـړی نـاد ان ښـکاري
نسکور چی پر یو تم په ا و ر د مـینی
د عـا شـق تـل دا سی گذران ښکاري
غم خو د ی بیا په ما را تا و شو ا شنا
چی په مکیز د ی سره لبان ښکاري
چـی بـی و فـا مـی و فـا د ا ر گـڼلی
ځـکه زړگـی مــی پښـیمان ښـکاري
ډیـر دردید لــی کړ   ید لـــی یمــه
رنځ د زړگی می بی درمان ښکاري
تـه چـی لـه ما نـه لـر ی لـر ی گـرځی
پـه باغ د زړه کی می خزان ښـکاري
تــه چـی خـپه خـپه را گـــو ری یــاره
ما تـه خپه نـو تـول جـهان ښـکاري
شهــیده څومره پـه زړه سخت دی ا شنا
ســتا او سـیلی و رتـه ا رزان ښـــکاري

# ننگرهارته

مال او سر مي درنه ځار شه ډك له ننگ اوله وقاره
زمـــا ښکلی ننگرهاره - زمـــــا ښکلی ننگرهاره
ته زما د سترگو تورئی- ننگیالیو زلمو کورئی
د ټول عمر پسرلی ئی - په گلانوتل سمسور ئی
په ځوانانو باندی مست ئی دبهار ښکلی دیاره
زمـا ښکلی ننگرهاره- زمـا ښکلی ننگرهاره

ستاد شنو ښکلو درونه- ستا ددنگو دنگو غرونه
خاطری لرمه زړه کـی - ستا د باغ او ددیرونه

هر يو غوږ مي لا بيدار دی د کڼر سيند له غرهاره
زمـا ښکلی ننگرهاره - زمـا ښکلی ننگرهاره

خوږّیاڼی اوکه شینواردی-ټول سرخرودکه چپرهاردی
کوز کڼر تر برکنړه - هر دامان دی لاله زار دی
د مملی باغ دی کـــم مه شه د بلبلو لـه چغـــها ره
زمـا ښکلی ننگرهاره - زمـا ښکلی ننگرهاره

ته مسکن ئی د پوهانو- ته لوی کورئی د غازیانو
پښتـــــانه تا کی اوسیږی - ته وطن ئی د مردانو
ښه تاریخ لـــــری د توری ای د سرو گلونو هاره
زمــا ښکلی ننگرهاره - زمــا ښکلی ننگرهاره

ستا تاوده ښه اخترونه - د دو ستــانو دید نونه
یادوم به دی وطنه - شاعـــــرانو محـــــــفلونه
د نارنج د گل میلی دی درکی تل وی ای نامداره
زمــا ښکلی ننگرهاره - زمــا ښکلی ننگرهاره

تاپه ښواوبدوپوی کړم- تاپه غیږه کی خپل لوی کړم
دخاپوخونه تراوسه-هم دی پلارکړم هم دی زوی کړم

په یو سر نه پوره کیږي - ستا حقونه دی بی شماره
زما ښکلی ننگرهاره - زما ښکلی ننگرهاره

ستا په مینه زه ژوندی یم - ما نه کله ته هیریږی
سرمی ځارستا له نامه شه-په هروخت به می یادیږی
ساری نه لری هیڅ ځای کی ای زمونږه تل بهاره
زما ښکلی ننگرهاره - زما ښکلی ننگرهاره



په پورتنی عکس کی د لوی ننګرهار د کنړونو مرکز (اسعد اباد) مشهور پل لیدل کیږي

زه شهیدبه دی تل ستایم-په خوازه نوم به دی پایم
ستا وصال کی زما ژوند دی - تل به ستا سندری وایم
د مزار نه یم را غلـــی ستا دیدن ته زمـــا یاره

زما ښکلی ننگرهاره - زما ښکلی ننگرهاره

# د نارنج گل وایی

ما معطر کړی په وژموستاسی دیار دی
زه دنارنج گل یم زما هم قدرپه کار دی

پاڼه می په عطرو کـــی لمده ده طراوت لرم
زه یم نازك خیاله رنگینی او طبیعت لرم
ماته که په ځیرشی څوخوشانه ښه لذت لرم

ډك یمه له فیضه مـا سره یو خوږ اسار دی
زه د نارنج گل یم زمـا هم قدر په کار دی

ډکه دخندا نه په بهارکی خوله زما وي تل
وصف د شاعر خوله کی لاله او د شهلا وي ..ل
ټوله خوشبو یی په دښتو اوپه صحرا وي تـل

ماپه خپل ښکلا تل رنگین کړی ننگرهاردی
زه د نارنج گل یم زما هم قدر په کار دی

ما سره زما په هره پاڼه کـــــــــې درسونه دي
تاسی ته ئی ښایم را سره ښه سبقونه دي
زړه کی می دعشق اومحبت خواږه رمزونه دي

نه یم بی ثمره زماژوند کی لوی یادګاردي
زه د نارنج ګل یم زما هم قدر په کار دي

روسته پاتی نه وم زه د نوروښو ګــــــلانو نه
ولی دومره وخت ‌هیروم دفکرخاوندانونه
ځــــــکه ګـــــیله من ومه د ټولو شاعرانو نه

وګوری په ما باندی هر بڼ ګل او ګلزار دی
زه د نارنج ګل یم زما هم قدر په کار دی

زه سنبول د سولی یو سپین ګل د ننګرهار یمه
شنو پاڼو کی پټ یو محبت ددی دیار یمه
ډیر ډیر عاشقان لرم ګلانو کـــــــی نامدار یمه

تود زماپه عطرو د شهید د زړه بازار دی
زه د نارنج ګل یم زما هم قدر په کار دی

# پښتونخوا ته

ای د باتورو او پتمنو ننگیالو وطنه
ای د ایشیادزړگي سر د پښتنو وطنه

ستا په درو اوپه دیرو کـی شازلمیان لوی شوي
ستا په لمنه کی رښتینی عاشقان لوی شوي
داستاپه غیزه کی باعزمه انسانان لوی شوي

ای د سر تیرو او سربازو شازلمو وطنه
ای د ایشیا د زړگي سر د پښتنو وطنه

وطنه ای د دنـــگو غرونو او عظمت خښتنه
وطنه ای د پاکی ځمکی او ثروت خښتنه
وطنه ای د تاریخي شان او شوکت خښتنه

وطنه ای د غیرتمنو پرگـــــــــنو وطنه
ای د ایشیاد زړگي سر د پښتنو وطنه

مینه دی هر پښتون په زړه کی غورځنگونه وهی
لکه دریاب د اباسین چی تل موجونه وهی
دا ستا په غم کی د افغان فـــکر منزلونه وهی

اوسی آباد او تـــل آزاد دمیړنو وطنه
ای دایشیا د زړگـــي سر د پښتنو وطنه
د طبیعت په نشو مسته د غیـــرت خاوره ئی
د پښتنو پت او عزته د همت خاوره ئی
ته د آزاد اولس د پت او د شوکـت خاوره ئی

ښایسته اوښکلی ئی په دنگودنگوغرووطنه
ای د ایشیا د زړگـــي سر د پښتنو وطنه
ای د خوشحال او د رحمان بابا د مینی ځمکی
ای د شهید بابا د ننبو تودی وینی ځمکی
ای د غازیانو لوی یادگـاره او رنگینی ځمکی

د سر ښندونکو لوی میراثه د زمرو وطنه
ای د ایشیا د زړگـي سر د پښتنو وطنه
د ننگ چراغه ستا بچي ستا آبادي غواړي تل
ستا سر لوړي ئی ده آرزو تا ته ښادی غواړي تل
د سر نه تیر دی خوبه تاکی آزادی غواړي تل

ای د (شهید) د ژوند ارمانه دپلرو وطنه
ای د ایشیا د زړگي سر د پښتنو وطنه

# غزل

چی ست دی راته یاره په گیلو کړی درځم
تسل د سوی زړه می نن په تلو کړی درځم

درځم چی د مودو مودو ارمان می د وصال و
له کـــوره می نن عـــزم د وتو کړی درځم
سوغات به ترمی اوښکی په لمنه کسی در وړم
د زړه سره مـــی دا رازپه سلگو کړی درځم
غنچی به په خپـــل لاس باندی دروړمه دگلانو
اغزو باندی مـــی عـــزم د ختو کړی درځم
درځم که راته راکړی د وصـــال ډك ډك جامونه
امید می ستـــا د سترگو د لیدو کړی درځم
که سڅرانه څوك پری کړی خوبیاهم ځان رسومه
قسم می گرانی ستاپه شونډوسروکړی درځم

شهیدباندی که لاره کی شپه تیره شوه جانانه
خو نیت مـــی د سبا په لمـــر ختو کـــړی درځم

# ناکامه عشق

عمرمی تول په تش خیالونوتیرشو
د زړه په درد او فریادونو تیر شو

دهجرشپه به می اوږده شی پسی
رقیب می خواکی په ګواښونوتیرشو
مـــا لا تری تمـــه د وفـــا کوله
یار د جـــــفا په مکیزونو تیر شو
نسیمـــــــه وکـــړه په بلبلو زیری
د خزان دور په باغـــــونو تیر شو
زه خوارمجنون سرپه صحراګرځمه
د لیلا عمـــــــر په نازونو تیر شو
په شربتی شونډو دی موړ نه کړمه
ژوند می په دغه امیدو نو تیر شو
ماوی روستـــــی دیدن ته ځمه دیار
وخت می په خوشی تدبیرونوتیرشو
خدایزوکه بیرته شي راستون شهیده
ژوند خو دی لاړه په غمونو تیر شو

# زه څوك يم

پښتنی مور يم روزلـــــی نوی ژ وند ته ارمغان يم
زه پښتون زوی دافغان يم زه پښتون زوی دافغان يم

پښتنی موريم روزلی زه پښتون پلارمی پښتون دی
استاذان می پښتـانه و ما لوستلی دا مضمون دی
مونـږه واړه پښتانه يوو يــو مـو دين يو مو آئين دی

په سپيڅـــــلی اراده خپل كلك ولاړ په هر ميدان يم
زه پښتون زوی د افغان يم زه پښتون زوی د افغان يم

دشيرشاه دتوری شرنگ يم په غليم می كړی واردی
زرغونه می خپله مورده احمد شاه بابامی پلاردی
ملالی مـی سكه خور ده د غيرت سره می كار دی
د خوشحـــال بابا لمسی يم او وراره د ميرويس خان يم
زه پښتون زوی د افغان يم زه پښتون زوی د افغان يم

الهامونه مـــــــی اخستی د شمشاد او له خيبره
په جذ با تو يم راغلی له كنړ غر او له سپين غره
زمـــــا مينه زيږيدلــــــــی له گړنگ او له كمره

بـــــی هدفه چیرته نه ځم خپل رهبر پسی روان یم
زه پښتون زوی دافغان یم زه پښتون زوی دافغان یم

زه عاشق دپاکـــــی مینی معشوقه می پښتونخواده
دنـــــگو دنـــگو غرو له منځه هنگامه خوره زما ده
دخپل قام آزادی غـــــواړم بس د زړه مدعامی داده

د میوونه ډك نیالـــــگی زه د دریا او ایمل خان یم
زه پښتون زوی دافغان یم زه پښتون زوی دافغان یم

زما خټه پښتنه ده پښتونـــــــخوا می لوی وطن دی
سرمی ځارشه دی وطن نه داوطن می روح اوتن دی
پیداشوی یم دی کورکی دالوی کورمی لوی مسکن دی
زمـــــــا مینه پښتنه ده پښتونوالی ته درما ن یم
زه پښتون زوی دافغان یم زه پښتون زوی دافغان یم
زه (شهید) خادم د قام یم کیدی غوږ زما کلام ته
زماملك خو پښتونخوادی آزاد ي غواړم خپل قام ته
سر می ایښی په خپل قام دی رسومه ځان مرام ته

دوطن په دښمنانو لـــــــــــــکه تندر د آسمان یم
زه پښتون زوی دافغان یم زه پښتون زوی دافغان یم

# یادونه

چی پکی نه وي د اشنا خبری
څه به کومــه د بل چا خبری

خوك چې غمجن دخوږی میني وي نو
هـــغه کـوي دمحبوبا خبری

کـــله چی راشي په دی خړو دښتو
مجـنون کوي بیا د لیلا خبری

پټ چی په زړه کی درد لري د مینی
یوســـی هغو لره زما خبری

چـــی یاد وي زلفی خوری د اشنا
هغو ته مــه کړی ناروا خبری

چـــی عشق او مینه ده پیدا له اوره
پتنگه مـــه کړه د بقا خبری

چی پـــکی ستا د ښکلی مخ ننبه ده
گـــل ته کوم د تمنا خبری

چـــی مستوي مـی په شراب د میني
ساقي ته مه کړه د گناه خبری

چی رتـهل شوی وي د یـــار له دره
هغه کـــوي تـــل د ژړا خبری

شهیده څه در باندی وشوو وایه
یار ته ونه کړلی هیڅ تا خبری



# د مینی پیغام

زما د زړګـــــی سره پیغامونه درلیږم
سلام اود زړه غوښی سوغاتونه درلیږم
پیرزو دی شی په تا د خوشحالـــــــی داخوږی ورځی
زه خاص دزړه په وینو ډك جامونه درلیږم
ارمان می زړه کی پاتی شوچی یوځای سره ناست وائی
رقیب د لاســــــه تاته فریادونه درلیږم
زما د حـــــال تپوس دی څه په پټه رانه کــــــړی
په پټه نن چی تاته څه حـــالونه درلیږم
داخپله بی وســــــــی مـــــــی تاته نه پریدی محبوبی
دســـوی زړه چی تاته ارمانونه درلیږم
دمینی لاره ورکــــــــــــــه کړه بیلتون د ادیښنو نه
د حسن په نامـــــه دی خوابونه درلیږم
ویشتـــــــــــلی دی په زړه چی یم په یو نظر د سترګو
په درداوغم اخته شومه دردونه درلیږم
حیا مـــــــــــی ده نظر کــــــــــی تاته نه شمه کتلی
شاهد می د غم تاته تصویرونه درلیږم
چی سترګودی زماپه زړګی کړی څه تاثیر دی
په وینو لیکل شوي دا ستا نونه درلیږم
شهید دی چی دمینی غم اودردسره بلد کړو
خوراك می د زړه غم شو بس غمونه درلیږم

# زړه می وائي

نه غواړم چی لاړشم کومی خواته دبل چاسره
خوښ یمه چی ګرځمـــــه د فکر او سودا سره

نه یمه بډای چی فخر وکړمـه په مال دولت
نه مـــی تعصب او عناد کړی دی د چا سره
وینی تویومه څـــوك خبرنه دي په حال زما
پټ پټ مـی رازونه دي داوښکواو ژړا سره
دامی بدبختی ده چی بیلتون زماپه برخه شو
کاشکی چی ملګری وای ترعمره یاره تاسره
نه حســـــــابومه دغه ژوند جدا له یاره زه
مړ که وم ژوند ی به شم په وصل داشنا سره
هومره به غمجن یمه چی سترګی می نمجنی وي
نه ښائی خوښي په غم الودو سترګو ما سره
ډیری خوشحالی سترګو لیدلی زړه رټلي دي
زړه مـــی وائي نه تیروم عمر په خندا سره
وویل دلسوز راته چی بس کـــړه وروره مه ژاړه
خواکـــــی ئی ولاړوم زه شهید په دا وینا سره

# د غریبانو پیغام

رحم وکـړی خدای دپاره مالدارانو

په بی وزلـــــو بی کسانو غریبانو

را وچت کـړی دا په خاوروپراته زړونه

ای مالـــــدا رو ثروتمند و انسانانو

مرحمت او شفقت وریاند ی وکړی

ای د حق او حقیقت طـرفـدا رانو

اجر ډیر دی په دنـــــیا هم په عقبا کی

څوک چی غاړه ږدی خدمت ته دخوارانو

دعاجزومددگارشی په هـروخت کی

ای بافکرو او دښه ژونـد خاوندانو

د ثروت په لذتو به هـــــــله پوه شی

چی تر سره کــــــړی حقوق د فقیرانو

یوکـړی زړونه په الفت اومحبت کی

خدمت وکړی په اخلاص د مظلومانو

په اخلاص د مظلومانو خواته ور شی

نظـــر واچوی د دوی په سرو چشمانو

نیك احساس دلاس نیوی ځان کی پیداکړی

یو حـُــل ورشی په تولگی د بـــی وزلانو

# وصال غواړم

وصال غواړمه په درکـــی دیار پروت یم
د بیلتون په رنځ رنځور او بیمارپروت یم

ساقـــی مـــه راوړه پیاله ماته د ملو
زه د مینی په نشوکـــی خـــمار پروت یم
دهجران سخته سیـــلی را باندی لگی
په صحرالکه مجنون خوار او زارپروت یم
چی اظهار یی په خوله هیڅ کولی نه شم
په یوهسی درداوخوږ کی ناچار پروت یم
په فریاد به مـــــی تمام جهان خبر شی
دردیدلـــــی زړه په غم د دلدار پروت یم
سر او مال می له جانان ځنی قربان شه
هسی خوښ زه پخپل دغه اقرار پروت یم
نا کـر د و د زمـــانی یم کـــــړولی
حوادثو کی د ژوند نا قرار پروت یم
د یار سترگی د شهید ستر گو کی رغړي
په بستر باندی چی ویښ اوبیدار پروت یم

# وطن نه

خپــــــل سرنه درته تیر یم دا زما عهد و پیمان دی

وطنه ستا لوړ تیا او سمسو رتیا می لوی ارمان دی

خاړپو څوکــی درسونه د غیرت دي تارا کړي

رازونه د مور غیرږه کی د پت دي تارا کړي

فکرونه د ژوند لاره کــی اوچت دی تارا کړي

لوی کړی می په تاکـــی ځان په ننګ او په ایمان دی

وطنه ستــــــا لوړتیا او سمسورتیا می لوی ارمان دی

ستاشنی ښکلی دری دااوچت غرونه اوسیندونه

ستاهر بوتی دوادی ته لری ښه ښه کانونه

ستا هـره سیمه ښکاري زمونږ ستر ګو کی ګلونه

روزلـــی دی په ننګ اوپه همت هـــــر یو افغان دی

وطنه ستــــــا لوړتیا او سمسورتیا می لوی ارمان دی

وطنه تانه ځار شم ته زما ښکلی لیلا ئی

مجنون یم ستا په مینه کی زما د وجود ساه ئی

جدا به سره نه شوو چی زه ستا او ته زمائی

دښمن ته دی مرګ غواړمه اودوست دی راته ګران دی

وطنه ستــــــا لوړتیا او سمسورتیا می لوی ارمان دی

لوګی شمــــــه له تا نه ته زما د سترګو تورئی

د پلار او د نیکه نه می میراث پاتی لوی کورئی

ستا غیرہ کی لوی شوي یو زمونږد ټولو مور ئی
مسکن د ننګیالو ئی نوم دی خپور په ټول جهان دی
وطنه ستــا لوړتیا او سمسورتیا می لوی ارمان دی

وطــــــنه تا پاللی یم اوس دا زما مــــــرام دی
سر لـــــوړی دی سا تمه دا مـــــــرام زما مدام دی
اخستی می له تا نه د خواږه ژوندون الهام دی

شهید یم ستا د مینی حال می ځکه په دا شان دی
وطنه ستا لوړتیا او سمسورتیا می لوی ارمان دی

# راز

خواته می پته غوندی بیا راغله
مسته تروره محـــبوبا راغله

خدایزوچې بیا څه گېله منه ښکاری
د چـــا د لاسه په ژړا راغله

مجنونه پاڅه هر قدم ئی ښکل کړه
عشق کی رنځوره شالیلا راغله

پوه شوم چی عمرمی تیریږی په غم
نا کامـــو هیلو ته سودا راغله

په یو نظــــریی رانه زړه یو وړ لو
لاړه او بیرته بـــی پروا راغله

خوا کـــی یی تیر شولو رقیب زړ گیه
دا په جـــفا که په وفا راغله

د پسرلـــــــی د نوی گل له مخی
خوږه وږمـــه چی د سبا راغله

د یارانی دفتریی غیږ کـــی ښکاری
دا دی په نـاز او په ادا راغله

شهیده خانده خوشحالی کوه نور
ښکلی دی خواته چی پخلا راغله

# ماشوم وائی

نه یمه وړوکـــی زه نښی د بابا لــــــرم
نن که زه ماشوم یمه فـــــکر د سبا لرم
مــــــه وایه کـــوچنی را ته ښه پوره سړی یمه
سرکـــی له خیالاتو نه ښه ښکلی دنیالرم
پروت دمور په غیږکی یم درس دمستقبل لولم

راز د ژونـدانه سره پټه مشغـــــولا لرم
ځم به د هد ف په لور کلـــــــــکه اراده لرم
نه غواړم دغیږی خوب زړه سره سلالرم
هر قدم په مینه ږدم نوی ژونــــد ته لار گورم
هری خوا لیدولره ښی سترگی بینا لرم
ښو ته ښه نـــــــــــظر کوم بدو ته بد گورمه
ډک له حقیقت ځنی دغه حس رسا لرم
نه یمرله عقله کم پوهه خدای راکــــــړی ده
زه چی داخه وایمه ځان باندی ویسالرم

وگوروپه ډیر درنښت مونږ بایدکوچنیانوته
زه شهــــــــــید د ټولو نه دغه تمنا لرم

## کبر جن ته

زه پوهیږم چې په اصل کې انسان يې
چې له نورو ځان اوچت ګڼي نادان يې

په عمل کې روسته پاتې يې له نورو
په وينا کـــې ګرځندی مين په ځان يې

د وطـــن سره دې نه شته د زړه مينه
د وطن خلـــکو ته بد ګوري حيوان يې

فـــکر وکـــړه چې له څه شي نه پيدائې
په لويي کې دفرعون ظالم په شان يې

ځان له نـــورونه هوښيار ګڼې په عقل
هر سړي ته پدې خـــام فکر عيان يې

باطني عزت دې نه شته په وجود کې
د ظاهر عـــزت په هڅه کې ناتوان يې

غواړې داچې په درانه نوم سره يادشې
نو د بل درنښت ته ولې په خپګان يې

ستا د مخ او تخت څهرې بدلې ښکارې
زه پوهيږم چې سکه ورور د شيطان يې

صفا يې د خولې لرې دې کې شك نه شته
مـــداري غوندې ښکاره په هر ميدان يې

که عالم ئی نو خوش خوی او برده بار شه
په کردار کی وروسته پاتی په جهان یی
خوش بینی او تواضع په تاکـــــی نه شته
په بدبین او کـــــوتابینوباندی گران یی
د هر دوست سره چـــــلیږی سیاست کی
د هوښیارو په نظر کـــــی بی ایمان یی

زه شهید به دی په شعر کی تل ستایم
که ته هر څومره د بدو قهرمـــــان یی

# اشنا ته

یوځل می راغلی خواته بیامی ونه لیدلی
تـــا وی راځـــم سبا ته بیا می ونه لیدلی

د امیدونو لار کی تل په سودا پاتی شوم
ته رانه لاړی یاره زه په ژړا پاتی شوم
کتل دی شاته، شاته بیـــا می ونه لیدلی

تا وی راځم سبا ته بیامـــی ونه لیدلی
زه انتظار کـــــی ومه ستا دراتلو په تمه
سترگی په لار کی ومه ستادلیدوپه تمه
وعـــده دی راکړه راته بیا می ونه لیدلی
تا وی راځم سبا ته بیا می ونه لیدلی
ما وی جفا مه کوه دنیا فانی ده یاره
تاوی نازونه کوم دامی ځوانی ده یاره

شهید ولاړ وم تاته بیا می ونه لیدلی
تا وی راځم سبا ته بیا می ونه لیدلی

# د ازادۍ بیرغ

دا ګلګون بیرغ د ازادۍ چې رپیدلی دی
غږ ئې د غیرت ټولې دنیا ته رسیدلی دی
ستوري که ځـلیږي په اسمان کې او رڼا کوي
دلته د پښتون د تـوري شرنـګ هم ځلیدلی دی
دا بیرغ چــې مونږه افغانان ورته خوښي کوو
مونږته ئې دموږپه غیږکې ننګ غیرت ښودلی دی
حق لـــري پښتون چې ازادۍ پسې ملا وتړي
ژاړي به غـلیم لـــکه چې مخکې ژړیدلی دی
لاس داستعمار ئې چې غوڅ کړی دی له دې مینې
تـــن د هر افــغان ځــکه په وینو لمبیدلی دی
ځـــــوك که لري مینه د وطن د آزادۍ سره
هـــسې پښتني هسې پښتون غیږکې روزلی دی
خپله پاکـــه وینه ئې د ننګ په ډګر تویه کړه
ځــکه مو نیکه دا غـــیرتي نوم را ګټلی دی

زه (شهید) په ویاړ سره هـــر چیرته دا وایمه
جوړه پښتونخوا به شي ما خوب هسې لیدلی دی

# د هجران لمبی

گرځـــی می اشنا د نا اشنا مخکی
وشلوم گریوان خپل زه د چامخکی

خومره می چی اوښکی را روانی شوی
هومره شوی بی قدره دلیلامخکی

مــــا ته یی چی شا کړه او روانه شوه
راغلی د هجران لمبی زما مخکی

نـــه پریدمه نـــوری اندیښنی زړه ته
پټ راز به تقدیم کړم ددنیامخکی

وریــــــــــــه شم په ډیرو ننواتو زه
ویـــه کړم فریاد دبی وفا مخکی

خورم د زړه غـــمونه شپه او ورځی زه
نلرم نور تاب ستا د جفا مخکی

هــــغه چا چی زه او ته جدا کــــړلو
گـرځی په ریا زما او ستا مخکی

ډیری ارزوگـــــــــــانی لرم زړه کی خو
شپــه ده را روانه د سبا مخکی

غواړی که غمازخړ شی شهیده نو
ووایه خپل حال د دلـــــربا مخکی

# د خيال دنيا

کله ودانه کــــله ورانه د دوران په ځپو
کله بهار کله خزان شی د هجران په لمبو
کلهِ خوشحاله خوشحالي کله ژړا وي پکی
کله نا ز ونه کلـــــه سازکلـه خندا وي پکی
کله له ډيری بی غمی چوپه چوپياوي پکی
کله د مينی تـــلـــــو سونه ناز ادا وي پکی
کله له زياتی اديښنونه کړي خپگان به اوږو
کله بهار کله خـــــزان شي د هجران په لمبو
کـــــله ددی دنيا باغونو کی گلونه وينم

کـــله سبا سره په گـــل کــــی شبنمونه وينم
بيا کـــــله کله به باغونو کی ډاگونه وينم
بيا کـــله کله زمانی کـــــی فرياد و نه وينم
کله چمن تر او تازه شی د نيسان په وږمو
کـــله بهار کله خـــزان شی د هجران په لمبو
کله خوارهِ خوازه ملگری وی رازونه کړی پټ
کله عاشق خپل معشوقی ته ځوابونه کړی پټ

کله مجنون شي د ليلا ته خپل حالونه کړي پټ
کـــــله دنيا شي تورله مينه نور کارونه کړي پټ
کـــــــــله چمن د گـــلو ونمه روان په اوبو
کـــــــله بهار کـــله خزان شی د هجران په لمبو
کـــــــله بدله زمانه شي ځانته رنگ ورکوي
کله همت شي ويښ خپل سراومال په ننگ ورکوي
کله ساقي شي جام دميوته يوکړنگ ورکوي
بيا کله کله غلغله شي چاته بنگ ورکوي

کله شهيد ته ورکوي زهر جانان په خوږو
کله بهار کله خزان شي د هجران په لمبو

# ارزو لرم

په وصل مو ړ به د خپل یار نه شم
په ناقـــــــرار زړه به قرار نه شم

ما ته د سرو شونډو سرونو شربت
راکـړه چی غم کی دی بیمار نه شم
غـــــــمونه مه پریږده یوازی ماته
سم نیمایی یی کړه چی خوارنه شم
داسی مـــــــی نه گنهله یاره چی زه
دا ستا په سر کی به په دار نه شم
که روح او تن رانه جداکـاندی څوك
دا ستا لـــــــه مینی به بیزار نه شم
مـــــــینه می حُـــــــکه پته ساتمه زه
چی ښکــــــاره چاته گناه گار نه شم

یمـــــــه شهید کومه په ښکلو مینه
له دی اقرار نه به انکار نه شم

# د استقلال بیرغ ته

د ازادی د مشالـــونه قربان

بیرغه ستا د رپیدو نه قربان

تا د با نـــنگو اشارو سره خـــپل

ټول افغانان دی په هیجان راوستل

ته د غـــازیانو لوی یادگار یادیږی

تـــا په مستی ښکلی زلمیان راوستل

ته د مـیرویس او احمد شاه نښه ئی

تـــا په غـیرت واړه غازیان راوستل

ستا دلوی شان او شوکتو نه قربان

بـــیرغه ستا د رپیدو نه قربان

تا د مـلالی لاس کی لاس ورکړی

ای د خــوشحال بابا د ننگ ملگریه

ته د ایمـــل او دریا خان نښه ئی

ای د شهید بابا د جـــنگ ملگریه

تا پښتنو ته د ننگ درس ښودلی

ای د پښتون شیرشاه د جنگ ملگریه

ستا د همت د ځلیدونه قربان

بیرغه ستا د رپیدو نه قربان

د نـــنگ چراغ ئی رڼائی لـری ته

په خـــوا او شادی پتنگان را درومی

ته د سربازو میړنــــــو ډیــوه یی
گــــوره ستا خواته شازلمیان را درومی
ای د با عزمو پښتنو یــــادگــــاره
تاته له هـــــر خوا عاشقان را درومی
قربان قربان ستا د ابرونه قربان
بــــیرغه ستا د رپیدو نه قربان

ای د شهید د خـــــاطر و بیرغـه
مـــــــــونږه په زړه کی امیدونه لرو
مونږ یه پوره زړه تا تـه ډاد درکوو
ملی وحدت ته ښه فــــــــکرونه لرو
د آزادی او خپلـــــواکی نښه یی

تـــا ته مونږ ډیر احـــــــــترامونه لرو

ستا د رنگینو نشانونه قربان
بیرغه ستا د رپیدو نه قربان

# د پښتون توره

چې ټول جهان کې تل یادیږي د پښتون توره ده
چې هر دښمن ترې ډیر ویریږي د پښتون توره ده
دا جوړه شوي په پښتو او پښتونواله باندې
د توریالیو چې خونیږي د پښتون توره ده
چې د شمشادله لوړي څوکې یې رڼا خوره ده
د ننګ شغلې ترې پورته کیږي دپښتون توره ده
نوم یې تاریخ کې لیکل شوي په زرینو کرښو
په لوي نامه چې ستایل کیږي د پښتون توره ده
چې په چنګیزاوپه انګریز یې میندې بورې کړلې
د هر ظالم سر پرې غوڅیږي د پښتون توره ده
د هر زورګیر په سینه نیغه ننوتي ښکاري
چې په غیرت باندې تودیږي د پښتون توره ده

د خپل بابا نه په میراث کې راته پاتې ده دا
تل چې دننګ کارکې چلیږي دپښتون توره ده

شهیده ګوره څومره ښه ښکاري غازیانو سره
د پټ ډګر کې چې شرنګیږي د پښتون توره ده

# تمنا

ما تا سره وفا کړې وفا وکړه اشنا
راځه جفانه تیره شه ته داوکړه اشنا

د مینې راز او نیاز کې شه زما سره همراز
د لطف او د کرم نظر په ما وکړه اشنا

یوه شیبه مې نه وځي له خیال او له خاطره
تپوس ددې سودا راته جدا وکړه اشنا

لږ راشه چې ژړګې مې درقیب پرې وچاودیږي
خوږه خوږه شه ستړګوکې خنداوکړه اشنا

قسم دې چې ستې شومه په اورکې د هجران
په پاس د خوږې مینې یو نګاه وکړه اشنا

وصال کې زه له تا نه بل څه نه غواړمه یاره
لاس راکړه راته لاس کې مشغولاوکړه اشنا

آخر به دې فانې دنیا نه لاړ شوو ارمانجن
لږ فکر پدې شپه کې د سبا وکړه اشنا

مامه پریږده یوازې په غمونو کې جانانه
تپوس مې د زخمې زړګې نن بیا وکړه اشنا

تر څوپورې به لرې لرې ګرځې له شهید نه
ستې او سوې زړه ته لې دوا وکړه اشنا

## د زړه فریاد

خندا ته چی می نه پریږدی ژړاته خومی پریده
د خــــــپلو رڼو اوښکو تماشا ته خو می پریده

په خــوله داشنا نوم اخستی ته شم ستادلاسه
دخیال په دنیاگی کی مشغولاته خومی پریده

ناصــــحه خدای دپاره بی له یاره نا قرار یم
د خپلی ناچاری د حال وینا ته خو می پریده

غمازه ستا د لاسه می د زړه زخم ناسور شو
علاج یی چی ونه شو واویلا ته خو می پریده

بهار چی دي په ما باندی پیرزونه دی رقیبه
خــــزان سیلی وهلی زړه دواته خو می پریده

وصال ته خو دی زه شهید پری نه ښودم خونکاره
نور بس کړه پاس د مینی او وفاته خومی پریده

# د زړه سودا

زړه رانه وړی خندا خندا کی
تا ای محبوبی وفا وفا کی
کـلـه رغیږم زړه می زخـــمی دی
تهـوتی ټوتی دی سودا سودا کی
دغـــه تاثیر تهـول ستا د نظر دی
چـــی دی په ما که سبا سبا کی
زه انتظـــــــار یم وفا وفا ته
شپه مــــــی تیریږی ژړا ژړا کی
د مینی اور دی لمـــبی لمبی دي
څـــمه اوس نور زه رضا رضا کی
دار چـــــی منلی منلی مـا دی
دیـــــار په مینه رسوا رسوا کی
کتل دی هومره خوارۀ خوارۀ دي
ته راته گـــــــوره حیا حیا کی
په وسو سو مـــی زړه زړه ږیږی
رقیب چی گرځی ستاپه خواخواکی
زه شهید پروت یم لیدو لیدو ته
د چا لیدو ته صحرا صحرا کی

# ملگرو ته

ملگرو زما عرض او دا بیان مه هیروی
پښتو او پښتونواله هر زمان مه هیروی

د خپلی سیمی خاورو ته چی گوری په ډیر قدر
مـــدام د خپلی خاوری عاشقان مه هیروی

احساس دبیداری ئی چی په مونږکی دی روزلی
ددی خـــاوری رښتینی خادمان مه هیروی

چی وائی دا کـــــومه او پخپل قـول ولاړ وی
باعـــزمه با ثـــباته انسانان مه هیروی

چی گالی په ځان هررازتکلیفونه شپه او ورځـی
د قـــام او د وطن خدمتگاران مه هیروی

ژوندون دغلامی نه خدایزومرگ به زمونږښه وی
په ټینگ عزم اوچت شی خپل پیمان مه هیروی

چی اخلی الهـــامونه انسانان دده له شـــعره
د قـــام مـــلی شاعر عبدالرحمن مه هیروی

تاریخ ئی چی په قـدر او عـــزت سره تل ستائی
میرویس او احمدشاه او خوشال خان مه هیروی

په حس د ملیت ئی چـــی د زړه دنیا تـــازه وه
ملـــگرو د شیرشاه غوندی افغان مه هیروی

د ننگ او دغـــیرت په کار کـــی دواړه سره یووو
ایمـــل سره ملـــگری دریا خان مه هیروی

پښتنګ د آزادی او محـــــــــــرك د شا زلمـــو
ملنـــــګ و ددی خاوری ملنګ جان مه هیروی
له خپلی پاکی مینی نه چی ځان لوګی لوګی کړی
نو وړ دي د ستایلو پتنګــــــــان مه هیروی
چی بی له لویه خدایه ئی بل چاته سرټیت نه وي
حرمت د هغه کس په هیڅ یوشان مه هیروی
چی عزم ئی فرهادی وی په تلاش دخپل هدف کی
د عشق او پاکی مینی صادقان مه هیروی
چی ملائی د پښتو په توره کلــــــکه وي تړلی
په هـــــره مرحله کی دا ځوانان مه هیروی
چی ښوته وائی ښه او بد ته بد په ښکاره وائی
دداسی حق ویونکی حق بیان مه هیروی
ملګرو شهید وائی که د قام لوړ یدل غواړی
سر لــــوړی د وطن قهرمانان مـــــه هیروی

# د ګبلو امېل

جفا دې وسوم بې وفا غونـــدې شوې
ته چې رقيب سره پخلا غوندې شوې

ما وې چې مينه به دې کلکه وي خو
په اشنائی کـــې نا اشنا غوندې شوې

يا خو دې زړه نه زه هير کـــړې يمه
پر ماغريب چې بې پروا غوندې شوې

دې وچو شونـــډو مې پترې نيولې
ته لـــکه ستورې د سبا غوندې شوې

آخر به ډير ډير ارمانـــــونه وکړې
خـــو زه به نه يم که ته ما غوندې شوې

دا د رازونو او نازونو وخـــت دې
زه دې مجنون ته مې ليلا غوندې شوې

زمـــــا د اوښکو امېل واخله اشنا
سلګې مې ټولې بې ريا غوندې شوې

# پښتونولی جذ بی

څنګه لکه زه چی پښتنی غیرګـــــی ساتلی یم
دا رنګه دی خاوری ننګیالی پښتون روزلی یم
ډیر ډیر پښتانه له دغی خاوری قربان شوی دی
بیا بیا په جنګنوکـی غازیان شهیدان شویدی
نور نور وطنونه ددوی جنګ ته حـیران شویدی
نن هم پخـــپل توره سپین میدان ته راوتلی یم
دارنګه دی خاوری ننګیالی پښتون روزلی یم
ای د باعظمتو پښتنو د ننګ غـــیرت خاوری
ای د توریا لیــو مړنیو د هــمت خـــاوری
ای زمونږ دپلاراود نیکه د ننګ اوپت خـاوری
اوس به تا پالمـــه لــــکه تا چی زه پاللی یم
دارنګه دی خاوری ننګیالی پښتون روزلی یم
اوس خو په میدان کی کلك ولاړلکه زمری یمه
نه تښتم غلــــیم نه جنګیالی او توریالی یم
سر می چی پدی خـــــاوره ورکړی بریالی یمه
بلی خـــواته نه ځم د عمل ځای ته راغلی یم
دا رنګه دی خاوری ننګیالی پښتون روزلی یم
دا د ننګیالیو خاوره بل څوك غصبوی نه شی

دا می د نیکه مېنه ده دی ته څوك راتلی نه شی

دغه پښتانه میړني دا کـــار قبلوی نه شی

دادننگ ډگـــر دی په غیرت کی راوتلی یم

دارنگه دی خاوری ننگیالی پښتون روزلی یم

سروی اوکه مال اوکه ژوندون ترینه ځاریږی نن

دلته ددی خـــاوری په بدل یاندی تیریږی نن

دا د (شهید) مېنه ده په سرو وینو لمبیږی نن

ځکه چی الـــهام د پښتنو جذ بو بللی یم

دارنگه دی خاوری ننگیالی پښتون روزلی یم

## د اشنا غمونه

پە ما انبار دي د دنیا غمونه
څه مې د ځان څه د اشنا غمونه

پښتون ژوندیه زه دې وینمه چې
څومره ډیر را غلله په تا غمونه

دغه تپوس له چا نه وکړمه زه
ولې راځي داسې په ما غمونه

نورمې په زړه کې ځکه نه ځایږي
په هر یو غم کې دي جدا غمونه

احساسه ! دادې د وختونودستور
نه لري کیږي په ژړا غمونه

یا مهربان شو یا ساده شو اشنا
شماري له ځان سره زما غمونه

راځي دې هروختې ژوندې ته زما
که په رښتیا پاتې وې ستا غمونه

سبا بیګاه دې څو روي شهیده
راوستل چا درپاتې دا غمونه

# د ملنګ جان په مزار

چی ډیر ګران او قدر من په هر افغان دی
دوطن په غیږ کی پروت دا ملنګ جان دی
دا ممتا ز په شا عرانو کـــــی یا دیږی
دا به هر وخت انسا نا نوکی یادیږی
تل به لوړ په افغا نا نو کـی یا دیږی
دا خاوند د اوچــــــت نـوم او د نشان دی
دوطن په غیږ کی پروت داملنګ جان دی
که پتنګ د بلی شمعی مـــدام یار و
او بلبل د سرو ګلـــونو خریدار و
یا مجنون د لیلا مینه کی نا مدار و
دا ملنګ هم خــــپلی خاوری نه قربان دی
د وطن په غیږ کی پروت داملنګ جان دی
خپل وطن کی زیار ایستل د ده مرام و
آزادي او پر مخ تلـل د ده مرامْ و
د خـــــپل قام بیدارید ل د ده مرام و
ځکـــه هر چا باندی ګران په هر زمان دی
دوطن په غیږ کی پروت داملنګ جان دی
دی د جنګ او د جګړی نه په نفـرت و

دی ډیر لری له کینی او حسود ت و
خدا ی ورکړی پدی خوی ده ته عـزت و
د تا ثیر نه یی ډك هـر شعر او بیان دی
دوطن په غیرۍ کی پروت داملنگ جان دی
څوك چی مرغم کی د قام اود وطن شي
یا په ننگ باندي یی سور کفن په تن شي
بیابنکاره لکه سورگل په شین چمن شي
پدی لوی صفت موصوف دا امین جان دی
دوطن په غیرۍ کی پروت داملنگ جان دی
د دی خاورو لاندی یو ټوټه غیرت دی
خـــــزا نه د ترانو ده ننگ او پت دی
دا د ټولو پښتنو یو لوی عــــزت دی
چي په خوب ویده یی خواکي دواجان دی
دوطن په غیرۍ کی پروت داملنگ جان دی
لکه عمر یی چی تیر کړی معرفت کی
روح یی هم غواړو خوشحاله په جنت کي
دا دعا ورته زمو نږ ده هر ساعت کی
شهید وایی نوم یی خپور په تول جهان دی
دوطن په غیرۍ کی پروت داملنگ جان دی

# کړاونه

اوښکی مي بهیږی یاره تا پسی
ستا نا زو ادا او د وفـــا پسی
خدایږو چي په زړه سترې ستومان شومه
ستا د شوخـــو سترگو د خندا پسی
خـــــــرخ د زمانی سودایی کړی یم
گرځم کور په کور ستا د ښکلا پسی
پټی مینی پټ په زړه سوری کـــړمه
پټ په پټه ژاړم محـــــبو با پسی
زړه می د هـــــجران لمبو سیزلی دی
گـــرځم د مجنو ن غوندی لیلا پسی
مینه مــــی د خاررو سره خاوری شوه
ژا ړم شپه او ورځی د اشنـــا پسی

گوندی چی شهیده خوشالی راشی
تا ته د غمــــــونو او ژړا پسی

# مونږ پښتانه يو

مونږ پښتانه يو شريعت لرو
ټينګ مو ايمان دی چی غيرت لرو

دلته عبثی لوبی نه منی څوك
انسانيت ته ضرورت لرو
پښتنی غيرږ کی روزل شوی يو مونږ
د پښتونوالی شرافت لرو
فداکاری ميدان ته ځان جوړو
لوړه آرزو د حريت لرو
ننګ چی ميراث دی پاتی شوی مونږته
د احمد شاه بابا وصيت لرو
د خپل وطن نه تيريدلی نه شو
د پلار نيکه دا نصيحت لرو
ليلا له مونږه څوك بيولی نه شی
چی د صادق مجنون صفت لرو

(شهيده ) ستا په اميدونو قسم
چی پښتونخوا ته ښه نيت لرو

# د زړه سوز

دا حقيقت دی ځان سودا کی وينم
تا چی رقيب سره خندا کی وينم

څو به دا خپله مينه پټه ساتم
سوز خو د زړه می په غوغا کی وينم

ما وی چی زه او ته به يو شو سره
خو تا خندا او ځان ژړا کی وينم

چی په ما راشی په ادا شه راته
خوښی د زړه می ستا ادا کی وينم

ښستنی پيغلی سپيلنی دی شمه
ښکلا دی ټوله په حيا کی وينم

ښکاری دعا شوه د شهيد قبوله
نن چی دا تا په خپله خوا کی وينم

## د سبا سترګه

دا خونو ما خپله لیـــلا ولیده
نن می چی سترګه د سبا ولیده

د زړه سودا می نوره ورکـــه شولـــه
په مینه مینه مـــی چی دا ولیده
خوب او خاطر ته خو می ډیره راتله
دغه دی اوس می په رښتیا ولیده

ساقی شرابو دی پری څه وکـــړله؟
په میخـــــانه کی می نڅا ولیده
شوم تېکنی خدایزو په ښکلـو باندی
چی ستا له خوا نه می جفا ولیده
زیری می وکړی په زخـــمونو د زړه
مایی په سرو شونډو مو سکا ولیده
په زړه مـــــی غشه تیزه کینښودلـــه
مـــا چی تېګـــی د خپل اشنا ولیده
پتنـــګ محـفل ته چا ورپرینښوده
نه یـی ډیـوه نه یـی رنـــا ولیده
د شهید زړه یی له ګوګله یوړ
لا می مغروره بی پروا ولیده

# بدله

ستا چی وفا شوه په جفا بدله
زمـا د زړه دنیا شوه بیا بدله

منم چی مــا سره دی مینه وه خو
هغه اوس چا کـــړه په ریا بدله
اول دی وخـندل په مینــه راته
بیا دی شوخـی شوه په حیا بدل
ما خو سرستاپه سر په دار نیولی
ستــا شوه د مینی تقـاضا بدله
تا چی رقیب سره سلا کـــوله
هلتــه زمــا شوه تمــنا بدله
د محـبت خبری نه شته پکـی
قاصـده اورم ستـا ویـنا بدله
تاچی موسکاته خوله راجوړه کړله
هغه د غم شپه شوه په ما بدله
چی د شهید امید پوره شی گلی
نوره غـوصه کـړه په ادا بدله

# زړه ته مې گوره

مجنون روان دی د لیلا سره ځی
اوښکې توئیږی د سودا سره ځی

چی خلك ئی بولی لیونی په صحرا
په تصـــور کی د اشنا سره ځی
د زړه غـــمونه یی زیاتیږی مدا م
ویر او مــاتم کوی ژړا سره ځی
لیــلا په زوره دا ناری وهـــلی
صــادق مین د خـپل وفـا سره ځی
چی په مــکیز مکیز منزلونه کوی
مسته لیلا خیال کی دچا سره ځی
چی یو عاشق شی بل پروا نه کوی
زړه ته می گوره بی پروا سره ځی

آخر به ورشی خپل دیارکلی ته
شهـید آرزو او تمنا سره ځـــی

# خوښ سفر

دا ډیره بخـــــتوره د دنیا وه هغه ورځ
خوزه خوږه اوډکه له خندا وه هغه ورځ

د ډیری خوشحالی نه به می زړه وهل ټوپونه
د عشق او مـــحبت نه ډکه دا وه هغه ورځ
غم نه وغماز نه و چی په ما او تا څه وکړی
زماا و ستاپه مینځ کی یکتنها وه هغه ورځ
شوه لنډه ډیر زر هغـــه ښایسته ورځ د سفر
بیاراولی ای خـــدایه چی شفاوه هغه ورځ
زه تیروتم پدی چی ماوی تل به دا وصال وی
جدا چی شوم له تا نه بی وفا وه هغه ورځ

چی لاس د اشنا تا لاس کی نیولی و شهیده
بس تا ته لـــــکه دم د مسیحا وه هغه ورځ

# دوطن مینه

جهان به وی ودان تل عالمان چی پکی وي
تدریس د معرفت ته استاذان چی پکی وي

د قـــــام سره چی هر څوك لری مینه په اخلاص
د خپل ملت د پاره خیر خواهان چی پکی وي
پروا به درشوت نه کوی ناست وی به څوکی کی
د خدای په لار روانه صاحبان چی پکی وي
رگو او په مغزو کی چی ساتی د وطن مینه
وینـــــا د بیداری ته شاعران چی پکی وي

دښمن ته به موقع گوری بدل به ورنه اخلی
نیکمرغه د اولس وي غازنان چی پکی وي

# معلم ته خطاب

څه وشودا که خدمتگار ئی دخپل قام معلمه
په مقامـــونوکی اوچت دی ستا مقام معلمه

تا فریضه خپله په ښه شان ادا کړیده تل
هـــر یو ناپوی ته دی د پوهی وینا کړیده تل
د جاهـــلانو د مرض دی دوا کړیده تل
دخـــپل وطن سره دی هروخت وفا کړیده تل
ځکـــه یادیږی نن په ډیر ډیر احترام معلمه
په مقـــامونوکـــی اوچت دی ستامقام معلمه

١

خلکو ته لار ښائی ړندو د لاس امسا یادیږی
په تور او سپین نور پوهوی چی رهنما یادیږی
په عمر ځوان یی خو په عقل کی بابا یادیږی
په زړونو خـــوږ لگیږی ژوند لره دوا یادیږی

هر چاته درونه ئی خدای دی درونلره مدام معلمه
په مقـــــامونو کی اوچت دی ستا مقام معلمه

پاخه کورونه جوړ وی یو ښه معما رئی زمونږ
خوږو نیالګیو کینولو ته په کارئی زمونږ
مونږه روزی مونږه پالی معنوي پلار ئی زمونږ
دزړګی سردسترګوتوره لوی بادارئی زمونږ
نصیحتونو نه دی ډك دی هر پیغام معلمه
په مقامونو کی اوچت دی ستا مقام معلمه

یو لوی تاثیر او مزیت په هر کلام کی دی ستا
قهر د خولی مهر د زړه په پاك مرام کی دی ستا
اغازدی هم ښه دی خوخونددکارانجام کی دی ستا
ځکه مفهوم او ماهیت په هر پیغام کی دی ستا
صفات دی ډیر ذی مانه پاتی شوونمام معلمه
په مقامونو کی اوچت دی ستا مقام معلمه

پدی پوهیږو د هر چا د شفقت لاندی ئی
پدی ښه پوه شه د هر چا د مرحمت لاندی ئی
خدایږو بی شکه چی ډیر ګران به ګران ملت باندی ئی
زه به دی ستایم چی موصوف په هر صفت باندی ئی
په تا دی تل وی د شهید لخوا سلام معلمه
په مقامونو کی اوچت دی ستا مقام معلمه

# گېله

چا ته لاړ شم چا مخکې ژړا وکړم
چــــا ته ستا د لاسه واویلا وکړم

یو خوامې ناصح بل خوارقیب ناست دی
چــــا سره د سوي زړه سلا وکړم
ستــــا لـــــه غمه یاره لیونی شومه
نور به خوښه تلو ته دصحرا وکړم
ته چـــې په یو نه خـــه مروره ئې
زه به مې دزړه تسکین په چا وکړم
خدای د پار ه گــــرانی مهــــربانه شه
بې لـــه تا به چـــا ته تمنا وکړم

وگوره لـــــــــږ ماته په خوازه نظـــر
لـــږ به دې د سترگو تماشا وکړم

زه شهید دا ستا هجر سېزلی یم
راشه چې د سوي زړه دوا وکړم

# د زړه خوشحالی

شپه چی تیره په امید شی رڼا یی ښکاری سبا کی
ای زړگیه خــــــوشحالیږه جفا نشته دی اشنا کی
تا کړی تیری ډیری سختی د رقیب ظالم د لاسه
اوس غوټی په غوړیدو شوه ته هم گرځه په خندا کی
اندیښنی کړه نوری لری ځان دی وژغوره له غمه
د نسیم وږمـــه خوره شوه د گلـــونو په ښکلا کی
د بیلتون لمبو ستی کړی خوار ابتر یی ابدی کړی
یــو گــړی هم قـــرار نه وی گرځـــیدلی په ژړاکی
دا ترور خیالـــونه پریده آینده وگــــوره ځانته
پام کــــوه چی خپه نه شی خوشحالی کوه دنیا کی
ته لا اوس دومره کړیږی چی صفا لکه آئینه یی
صــــــداقت به دی معلوم شی د خوبانو په جفا کی

د ژوندون سمون هیرنه کړی تا ته وایم ای زړگیه
خپل مطلب ته تل رسیږی څوک چی درومی په رڼا کی

د شهید خــواره زړگیه په شهلا سترگو مین شوی
لیونتوب دي مبارك شه تورو سترگو په سودا کی

# د مینی اور

د زړه جونګړه مې ودانه نه شوه
په رقــــیبانو دنیا ورانه نه شوه

سوال او زارۍ مې ورته ډیره وکړه
نامهـــــــربانه مهـــــــربانه نه شوه
څـــیرې ګریوان په ژړا ورغلـــــمه
په تړمواوښکومې پریشانه نه شوه
ما په غـــــمجن زړه فریادونه کول
هـــغه زما په حال حیرانه نه شوه
مـــا ورته سر په نذرانه ایښی و
خـــو هغه تیره لــــه جفانه نه شوه
ماورته توئې کړې دخپل زړه وینې
مینه د ښکلو هیڅ ارزانه نه شوه

شهیده ستا دا غمـــځپلې آرزو
له خپلې مینې پښیمانه نه شوه

# د غم تالی

څو به په عشق کی لو غړن گرځم
د اشنا مینه کی غمجن گرځـــــــم

کلـــــه به راشي زما زړه ته خوښی
پدی سودا کی ارمانجـــــن گرځم
خلـــکوله ما ځنی خندا مه غواړی
اخته په غم یمـــــه درد من گرځم
گرځـــــم مـــــدام د لیونیو په څیر
د چا په یاد ورك له وطن گرځم
څوك می په رنځ باندی پوهیږی کله
خورمه غمونه اندیښمن گرځم

چی یی گلونه تالا کړي خزان
شهید مدام پدی چمن گرځم

# د ننګرهار یاد

د ګلو په باغـــو کې ننګرهار رایادوو
خوازه دوستان راټول دي هغه یاررایادوو

بلبل په افتخار سره د ګلو خـــواته راغی
مونږ هـــم دخپل وطن ښکلی ګلزار رایادوو
خوږې وږمې چلیږي دنسیم په اشا رو کې
د وخت په ارزښت پوه زاړه افکار را یادوو
په ټخنګ کې دګلانوجوړمحفل دی دیارا نو
نو ځکه مونږ د خپل وطن مالیار را یادوو
قربان دي له نامه شمه زمـــا ښکلـــی وطنه
دا تابه په هر ځای کی په تکرار را یادوو

شهید یمه او سیزمه د کوز کنړ په خوا کي
بهسود او ســـرخ رود او چپرهار را یادوو

# خپلې مورته

تا نه ځارشم په ما گرانی زما موری
ای زړه سواندی مهربانی زما موری
ظاهر نه وم لا دنیا ته ستا ارمان وم
په باطن وجود کی ستاپټ اوپنهان وم
په امید به دی ساتلـــم تاته گران وم
ای زما غم کی ستومانی زما موری
ای زړه سواندی مهربانی زما موری
چی پیدا شوم تا په ډیر نازیم روزلی
تا زمـــا د پاره هـــر تکلیف گاللی
شپــه او ورځ دی په ځارځار یمه بللی
په خوږه ژبه قربانی زما مـــوری
ای زړه سواندی مهربانی زما موری
ستا په غیږه کـــی درسونه د وفا وو
ستا لاسونو کـــی رازونه ددنیا وو
ستاپه مینه کی خوندونه په رښتیا وو
ای عالمی فیض رسانی زمـا موری

اي زړه سواندی مهربانی زما موری

ستا شوېدوکی د غیرت ښکلی پیغام و
ستا په زړه کی محبت ددې لوی قام و
د اسلام او د پښتو نـــوم ته دی پام و
د پښتو په لار روانی زمـــا موری
ای زړه سواندی مهربانی زما موری

تا پاللی زه خـدمت ته د خپل قام یم
دخپل قام لوی اوورته لاس په نام یم
په ادب او په تعــظیم او احـترام یم
میندی تا ته دی حیرانی زما موری
ای زړه سواندی مهربانی زما موری

تا زما د پاره تیر کــړل شو گیرونه
تر سبا به دی کول خدای ته سوالونه
په امید دی تیرول د ژوند وختـــونه
د روزنی قــهرمانی زما مــوری
اي زړه سواندی مهربانی زماموری

یو شیبه چی به له مانه ته جدا شوی
ما به و ژړل نو ته به وار خطا شوی
په څارڅار او په للو به می دوا شوی
ای درنی او قدردانی زمــا مـوری

اي زړه‌سواندی مهربانی زماموری

په رښتیا چی زما موری ته زما وی

زمـــا ژوند ته لـــکه دم د مسیحا وی

لالها نده او زهیره تـــل په مــــاوی

په غیرت کی پهلوانی زما موری

اي زړه سواندی مهربانی زما موری

په رښتیا چی په ماډیردی ستاحقونه

اوس می وخت دي ښکلومه دی لاسونه

شپه او ورځ به دی کومـــه خدمتونه

د شهید د ژوند درمانی زما موری

اي زړه‌سواندی مهربانی زما موری

# د بهار زېرى

نوى موسم دى په وطن مو نو بهار راغلى
دهقانه زيرى مى درباندى وخت دكارراغلى

تازه هـــــوا خلاصه فضا ده سره گلان وگورو
هلته په باغ كـــى د گل خواته بلبلان وگورو
شنو چمنونو كـــــى ډېر ښكلى بوراگان وگورو
هــر يو وجودته دموجود الهام د زيا رراغلى
دهقانه زيرى مى درباند ى وخت دكاررا غلى
د زمـــــــانى د تقاضـــا سره رفتار غوره كړه
گفتارته وركړه نوررخصت ځانته كردارغوره كړه
دنوى عـــــصرپه ايجاب ژونداوروزگارغوره كړه
دا پسرلى د اميد و ستا په ديــــار راغـــلى
دهقانه زيرى مى درباندى وخت د كارراغـــلى
په حـــــركت كـى بركت دى شه بيدار ځـــــلميه
اغزوكى پټ وى سره گلـــونه وكړه كارځلميه
بيړه په كارده چى نورونه كــړى مدارځـــــلميه
نسيم چـليزى په وږمـــــو نوى سهار راغـلى
دهقانه زيرى مـى درباندى وخت دكارراغلى
افـــغان بزگره ځان گوښه كړه له غـــــفلته ځنى

زرشه را پاڅه واخــله کار له لوړ همته ځنی
گټه په کار ده فرهادي عـــزم اوجر ئته ځنی
نــوی بدلون په کائناتو کــی د وبار راغلی
دهقانه زیری می دریاندی وخت دکارراغلی
څوك چی ددی خاوری لوړتیاکی تکلیفونه گالی
ملي ارام ته په ځان هر راز شو گیرونه گالي
چـی د شهـــید په پل قدم ږدی زحمتونه گالي

د هغو زړو نوته یو خوږ غوندی اسرار راغلی
دهقانه زیری می د رباندی وخت د کار راغلی

# خاطره

ووتم لـه ښاره په بانډو و گـرځیدم
بیا په خپلو ورانوکنډوالو وگرځیدم

اوښکی می له ډیره غمه توئی په گریوان شولی
کـــله چی په خپلو هدیرو و گرځیدم
بیا په ستړی زړه د کــلی مینځ ته وردننه شوم
خپل دکور په ورانو دروازو وگرځیدم
زه د نیم بسمـــــل مرغه په څیر هلته روان ومه
باغ کی دهجران په سرولمبووگرځیدم
وچو وچو پانـــــو ته په وچو شونډو و دریدم
لاړم د ظالـــــم په ناکردو و گرځیدم
هلته مي کړی تیری خاطری خپلی را یادی خو
زه دگلوخیال کی په اغزو وگرځیدم
ما می دجانان نښی هغه ځای کی پیدا نه کړی
ځکه په زړا او په سلگو وگرځیدم

نه وم پوی په ځان ډیروچرتونولری وړی وم
زه شـــهید مجنون شوم په میرو و گرځیدم

# ځماخوښ دی

چی هر ځوان پوی اوزړه وروي زماخوښ دی
چی د ژوند په راز خبر وي زمـــا خوښ دی

چی په خدای او پیغمبر ئی ایمان ټینګ وي
کــــه پردی که مـی پدر وي زما خوښ دی
چی عالـــم وي او عـــــمل هـــم ورسره وي
چــــی پدی نوم معـــتبر وي زما خوښ دی
په وجـــود کی یی چی هیڅ تعصب نه وي
هـــم ادیب او مـــــنور وي زمـــــا خوښ دی
شپه او ورځــــــی د وطـــــن سندری وائــــی
چی خاونـــــــد ددی هــــنر وي زما خوښ دی
چی احساس د ملیت لـــــــــري په زړه کی
که سوالـــــګر که میلیونر وي زما خوښ دی
هر یو کــــار چی شی آغــــــازله ابتدا نه
چــــی په عقــــل برابر وي زمـــــا خوښ دی
د بی وخته کښت حاصــــل بی نتیجی وي
چی په خپل وخت کی ئی کروي زماخوښ دی
چی غیرت او د همت په حسن موړ وي
چی ګاڼه ئی توره سپروي زما خوښ دی
چــــی دخــــاوری د دښمن سره جنګیږي

دا په سمه که په غروي زمـا خوښ دی
چــی د ملك د آزادی پسی ملنـگ وي
که هر څومره درپه دروي زما خوښ دی
سرېتوب یو ښه جوهر دی په انسان کی
چی په چاکی داجوهر وي زما خوښ دی
چــی د قـــام او دمـــلت غم ورسره وي
کـه په لروي که په بروي زما خوښ دی
کــه د نورو خلـــکو نور خـلك خوښیږي
چــی د مینی قلندر وي زما خوښ دی
بیان هغه دی چی ټول رښتیا رښتیا وي
که خطر پکی د سروي زما خوښ دی

زه شهـــــید په لوړ آواز سره دا وایم
چی د ټول ملت رهبر وي زما خوښ دی

## د بهار وږمه

دا چې چلیږي د بهار وږمه ده

له کیفه ډکه د سهار وږمه ده

نسیم راوړي ده له ځـــــــانه سره

مستوي مسته د گـلزار وږمه ده

دي کـــــــې دوا شته دردمندانو لره

ددنگو غرونو او آبشار وږمه ده

خدایږو چې زړونو کې بهار جوړوي

دادچـــمن او لالـــه زار وږمه ده

دا چـــې په هــرچا باندي ښه لگیږي

زیـــاته خوږه د کـوهسار وږمه ده

په دي کې درس دنوي ژوندموجودي

دا دقـــدرت د ابتکــــار وږمه ده

دي کــــې زړه آرزو خپل رنگ بدلوي

داد ځواني او د روزگار وږمه ده

دا د پسرلـــې ښکـــلو گـــلانو څني

وړ د ستاینې او یادگار وږمه ده

راغله د روح تازه کیدو د پاره

شهیده دا د ننگرهاروږمـه ده

# د صحت ورځ

روغ صورت نعمت دی محروم ترینه بیمار دی
نن د صحت ورځ ده دا د روغ وجود گفتار دی
دا ورځ بختوره په هر ځای کی لوړ مقام لری
واړه دنیا وال ورته په ډیره مینه پام لری
هر سړی ددغی ورځـــی ډیر ډیر احترام لری
ژوند دی په روغتیا کی او ډیرشکرپری په کاردی
نن د صـــحت ورځ ده دا د روغ وجـــود گفتاردی
دا چـــی روغ وجود لرو دافیض دډاکترانو دی
دا تدبیر اودا عقل دپوهی خاوندانو دی
لوی نظرددوی مدام لومړی ځل په کوچنیانودی
مخه دمکروب نیسی واکسین ورته تیاردی
نن دصحت ورځ ده دا دروغ وجود گفتاردی
خلك شوویی غـــمه دچیچك له تکلـــــیفونونه
کور په کور واکسین شوو کوچینان خلاص شوله دردونونه
ښه دی چی بی غمه شوونورمونږله دی غمونونه
هرو طنپرست ډا کتر د خلکو خدمتگار دی
نن دصحت ورځ ده دادروغ وجود گفتار دی
غواړی طبیبان چی مرض ورك شی انسانانو کی
عقل او تد بیر نه وی سالم په نارو غانو کی

بي لــــه سليم عقله ژوند محال دی جهانیانو کی
ځوك چی روغ وجود لری متین او برده باردی

نن د صحت ورځ ده دا د روغ وجود گفتار دی

زه شهید ملـــــگری د صـــــــاد قو ډاکترانو یم
خاص مخلص مدام زه د بی وزلو ناروغا نو یم
هر ځـــــای کـی یاد یږم چي اشنا د صادقانو یم

ما باندی ډیر گران هر یو ډاکتر د خپل دیاردی
نن د صحت ورځ ده دا د روغ وجود گفتار دی

# د ميني سودا

په زړه مــــی ستا خبری شولی
خپلی خبری را نه هیری شولی

زه چي به ستاپه خواکی ناست وم کله
زړی گــــلی به را برڅیری شولی
بلبل په سوز د ژونـــد نغـمه غـــــزوی
د گـــل په پاڼو لمبی پوری شولی
مـــا به ژړل تا به تســـل را کــــــاو
لا می پخوانه سلگی ډیری شولی
راشه د حال مـــی څه تپوس وکـړه ته
بیا د رقیب خبری سپوری شولی
ځـــــان سره راوړه ډك جامونه ما ته
ساقی را پاڅه شیبی نوری شولی
تا چـــــی رقیب ته په خــــــندا وکتل
د غــــم څپی را نه چاپیری شولی
ترینه به پورته شــــی وزمی شهیده
ستا د امید با غچی سمسوری شولی

# د کنړ غره کی

د غره سفر ته می رښتیا خوښه ده
د لیونو مـــی دا صحرا خوښه ده

د چـــا په یاد چی ورته گـــورمه زه
سپوږمی می ستورو سره لا خوښه ده
چی طبیعت گوته په خوله کړی ورته
لـــه کیفه ډکـــه می دنیا خوښه ده
نه هـــیرومه د هـــجران غـــــــمونه
هـــم می ژړا هم می خندا خوښه ده
په ځانکندن مـــی څه پروا نه شته دی
ساه می وتلی ستا په خوا خوښه ده
د عشق او مینی نه انـــــکار نه کوم
هرڅه نه مخکی می همداخوښه ده
د قـــــدرتـــونـــــو ننداری لتـــهـــوم
د سپین غره تللو ته زما خوښه ده
ما شهید وی حسنه غره ته گوره
د دی نښترومی ښکلا خوښه ده

# د دره نور پیغله

خړو جامو کی څومره ښه ښکاریده
پیغـــله چی کورنه راوته ښکاریده

شډل ښایست یی دلید لـو وړ و
چـــی په خپل حسن نازیده ښکاریده

ترور ترورئی اخوا دیخوا کـــتل
د چـــاپه خیال کی ځنګیده ښکاریده

د زړونو ښکارلره راغلی وه چی
ځـــان سره غـــلی غزیده ښکاریده

صدف غاښونو ئی بریښنا کـــوله
لـــه ډیـــره نازه پر خنده ښکاریده

لکه د چا په انتظار کـــی چی وه
لا کـــله کـــله ودریـــده ښکاریده

چـا به چی لږڅه تری پوښتنه وکړه
دا به پری ډیـــــره قاریده ښکاریده

ډیـرو نخـــرو او د نـــازونو سـره
څـوچی خپل ځای ته رسیده ښکاریده

نه بل څه نه وه ای شهیده دا خو
د شاعـری مسته نغمه ښکاریده

# گلان مه شکوه

مــــه شکوه له باغه گلان مه شکوه
مه شکوه دا ښکلی شیان مه شکوه

مه شکوه چی دا د مینی ځانگی دی
مه شکوه دا گل د ارمان مه شکوه

مه شکوه دی پاښو کـــــی رازونه دی
مه شکوه د راز دا جهان مه شکوه
مـــــه شکوه رنگینی خاطــــــری لری
مه شکوه دا گل د بوستان مه شکوه
مــــه شکوه چی بیا به ارمانونه کړی
مــــه شکوه ارزو د جانان مه شکوه
مه شکوه چی ښکلی به زړه بدی کړی
مه شکوه د ښکلو پیمان مه شکوه

مه شکوه شهید پکـــی خواری کړی
مـه شکوه د سرو گلو کان مه شکوه

## (د محمد داود"شهید" لنډه پیژ ند نه )

که سړی د پښتو ادب ښکلی بڼ ته ننووځي نو و به گوری چی د پښتو ادب ښکلی بڼ دراز راز ښکلاو او خو د رویه گلا نو خخه ډك دی هو په داسی گلانو چی ښکلا او رنگینی د پښتو ادب ښکلا او رنگینی نوره هم زیاته کړیده د پښتو ادب ددغو ښکلو او خودرویه گلانو څخه یو هم د ننگرهار د بهسودو (محمد داود شهید دی) ریښتیا هم شهید ددغه ادبی بڼ ښکلی گل او هغه ځوان شاعر دی چی د شاعرانه زړه او دماغ خاوند اشعارئی په ملي رنگ رنگین او د هیواد دخدمت د پاره تودی ارزوگانی لري همدغه سبب دی چی شاعرانه احساسات ئی د هیواد او قوم سره د رښتیانی مینی او دخلکو د وا قعی خدمت کولو نماینده گی کوي محمد داود شهید په ۱۳۲۲هجری لمریځ کال دکنرونو د ولایت په مرکز اسعداباد کښی زیږیدلی چی وروسته بیا د دوی کورنی خپل پلارنی ټاټوبی د بهسودو دجمالیو کلی ته راغلی. د دوی کورنی یوه منوره او شاعرانه کورنی ده چی پلارئی دوست محمد خان د خپل وخت یو منور او د ولسي شهرت خاوند او نیکه ئی خدای بخښلی غازی محمد رسول خان شهید چی په ۱۲۹۸ع کال کښی ئی د انگریزی استعمارگرو دری فوځی ډلی لښکری د لنډی خیبر په سیمه کښی له منځه وړی دی چی تاریخی یادونه یي د ننگرهار او کابل په مجلو کی شویده.

(مورئی بی بی سا یره محوي قادري) د پښتو او دري ژبی ډیره ښه شاعره چې د اوسنی لیکوال په دوهم ټوك کی پیژ ندنه ځای شویده . څرنکه چه محمد داود شهید په یوه شاعرانه کورنی کی زیزیدلی او په شاعرانه محول کښی روزل شوی او لوی شویدی . نو ځکه یی له کو چنیوالی څخه د شعر ویلو سره مینه درلوده او څو مره چې لویده او وخت پری تیریده هغومره ئی شعری استعداد هم روزل کیده او وده یي کوله . تر څو په ۱۳۳۸ هجري لمریځ کال کی د دوي لومړنی شعر "جهان دی وي ودان" دننگرهار په مجله کی خپور شو. چی همدغه د شعر ویلو په لاره کی د دوی د تشویق او هڅونی سبب شو تر هغه ورسته يي د شعرونو ادبي لیکنو او ناولونو په لیکنو پیل وکړ. چی د ننگرهار په ورځپانه، ننگرهار مجله، کابل مجله ، هیواد ورځپانه، طلوع افغان ،ورځپانه اتفاق اسلام ورځپانه، پکتیا اوقندوز په ورځپانو او د پښتون ږغ یعنی آواز په مجله کی زیاد شمیر اثار نشر او خپاره شویدي. د محمد داود شهید د زده کړی په هکله باید وویل شی چه لمړنی زده کړه ئی د جلال آباد په دوهم لمبر ښوونځی کی او ثانوي زده کړه ئی د ننگرهار په لیسه او د کامی د مراد علی په لیسه کی تر دولسم ټولگی پوری بشپړ کړی چی وروسته بیا د ښوونځی د فراغت څخه په ۱۳٤٥ هجری لمریځ کال د لمړی ځل لپاره د ننگرهار د بهسودو د محمدي صاحبزاده په منځني ښوونځي کی د ښوونکی په توگه مقرر شو چی په پوره ایمانداری ۱۸ کاله د ښوونکی په توگه او

اوه کاله ئی دترانسپورت په وزارت کی دماموریت دنده اجراء کړی چی اوس د څو کلونو راهیسی رسمي دنده په غاړه نلری.

محمد داود شهید د یو اخلاقی جرأت خاوند شاعر دی چی تل ئی په رسمی غونډو او ادبی محافلو کی ګډون کړیدی. چی د پښتو ژبی د اولسی او ملی شاعر خدای بخښلی ملنګ جان په قبر د پښتنو او بلوڅو د ملی ورځی په مناسبت او د رادیو افغانستان په ستر تالار کی په مشاعرو کی ګډون یا دولی شو ددوی شعرونه زیاتره ملی او وطني رنګ لري چی د هیواد سره ددوی د رښتیانی مینی نمایندګی کوي.

خو اجتماعي او عشقي شعرونه ئی هم زیاد دي . کله کله یو نیم انتقادي او اصلاحی شعرونه هم لیکی. چی تولنیزو نیمګړتیاو ته ګوته نیسی او د اصلاح غوښتنه ئی په کی په یو انداز کی ترسیم کړی وی. دا و د پښتو ژبی د ځوان شاعر محمد داود شهید پیژندنه چی په لنډه توګه وړاندی شوه. اوس به تاسی ګران لوستونکی د دوی د شعرونو لوستلو ته راوبولوخو خدای دی وکړي چی پدی برخه کی زمونږ لیکنه څه ناڅه په ځای وي.

دا هم تاسی او دا هم تا سی ته د هیواد د ځوان شاعر محمد داود شهید شاعرانه سوغات.

دهمرازلیکنه





بـوراگـان او پتـنگان ور پسـی دروميِ
په کوم ځای کی چی دمینی علامی وي



## محمد داود شهید

# مننه

زه په پیښو رکی د سید جمال الدین (افغاني) دمطبعی دادب پالو کار کوونکو څخه چی زما د کتاب په چا پولو کی یی په پوره اخلاص خپلی هڅی سرته رسولي دي د زړه له کومی مننه کوم .

په درناوی شهید

